په دے حائے کښے علامه مالکی یو تفصیلی نوٹ ورکړے دے
چه په هغه کښے د حضور سید عالمؐ نبی اکرم ﷺ نورانیت د
احادیثو په حوالے سره بیان کړے دے۔

(21) په فتاوی حدیثیه کښے راځی

وانما الذی رواه عبدالرزاق انه ﷺ قال ان الله خلق نور محمد قبل الاشیاء من نوره

عبدالرزاق چه کوم حدیث روایت کړے دے هغه دا چه حضور نبی اکرم ﷺ او فرمائیل۔ بیشکه الله تعالیٰ هر څه نه مخکښے خپل نور نه د مصطفیٰ ﷺ نور پیدا کړو

احمد بن حجر ہیتمی مکی، امام (م 974ھ) فتاوی حدیثیه (مصطفیٰ البابی، مصر) ص 247

(22) الآثار المرفوعه کښے امام عبدالرزاق په حوالے سره د حضرت جابر رضی الله عنه روایت نقل کولو نه پس د تنبیهه عنوان سره لیکی د عبدالرزاق روایت سره د نور محمدی پیدائش اول کیدل اود مخلوق نه مخکښے پیدا کیدل ثابت دی۔

عبدالحی لکھنوی، علامه: الآثار المرفوعه فی الاخبار الموضوعه
مکتبه قدوسیه، لاہور) ص 34-33

(23) یوسف بن اسمعیل نبہانی، علامه : حجة الله علی العالمین
(مکتبه نوریه رضویه، لائل پور ص 28

(24) مدراج النبوة کښے راځی۔

درحدیث صحیح وارد شده که اول ما خلق الله نوری۔ عبدالحق محدث دہلوی، شیخ محقق (م 1052ھ) مدارج النبوة فارسی (مکتبه نوریه رضویه، سکھر) ج 2 ص 2

ته فرض کړه۔ که چیرے یو محفل کښے دغه تول علماء، عرفاء



محدثین تشریف فرما وی او دغه حدیث بیانوی۔ او د دے تصدیق او توثیق کوی نو آیا لوئے نه لوئے علامه به د وئیلو جرات و کړی؟ چه دغه تول دروغژن، جاہل او کاذبه دی۔ لکه چه احسان الٰہی ظهیر کړی دی۔

## د مخالفینو گواہی۔

(25) دغیر مقلدینو مشهور عالم وحید الزمان لیکی۔

الله تعالیٰ هر څه نه مخکښے نور محمدی پیدا کړو. بیائے اوبه بیائے اوبو د پاسه عرش پیدا کړو. بیا هوا بیا قلم او دوات بیائے عقل پیدا کړو. نو نور محمدی د آسمانونو، زمکے او په دوئ کښے چه څه دی همه مخلوق د پاره ماده اولنه دے۔

په حاشیه کښے لیکی. چه قلم او عقل کښے اولیت اضافی دے یعنی دغه دوړاه له نورو څیز ونو نه مخکښے دی. داسے نه چه له هر څه نه مخکښے دی. 12 قو

وحید الزمان، ہدیة المهدی. طبع سیالکوٹ ص 56

26 دعلماء دیوبند حکیم الامت د حضرت جابر رضی الله عنه روایت د امام عبدالرزاق په حوالے سره نقل کړو او پرے ئے اعتماد و کړو۔

اشرف علی تهانوی، مولوی: نشر الطیب (تاج کمپنی، لاہور) ص 6

27 د غیر مقلدینو او دیوبندیا نو امام شاه محمد اسمعیل دہلوی لیکی چنانکه روایت اول ما خلق الله نوری بر آن دلالت می دارد لکه څنګه چه روایت اول ما خلق الله په دے دلالت کوی۔ محمد اسمعیل دہلوی یک روزه (طبع ملتان ص 11

(28) په فتاوی رشیدیه کښے داغلی دی

سوال۔ اول ماخلق الله نوری او لولاک لماخلقت الافلاک دغه دواړه حدیثونه صحیح دی او که وضعی۔

جواب۔ دغه حد یثونه په صحاح کښې موجود نه دی. مګر شیخ
عبدالحق رحمه الله اول ماخلق الله نوری نقل کړے دے چه ددے لږ
اصل شته۔

مولوی رشید احمد ګنګوہی۔ فتاوی رشیدیه۔ مبوب (محمد سعید
کراچی) ص 157۔ دے نه مخکښې د مدارج النبوة عبارت تیر شو چه
هغه کښې شیخ محقق دے حدیث ته صحیح وئیلی دی. او ګنګوہی
صیب ووائی چه شیخ په نزد دغه حدیث معمولی اصل لری۔ فیا
للعجب۔

(دحدیثونو تطبیق)

الله تعالی پر څه نه مخکښې څه پیدا کړو؛ په دے سلسلے کښې
مختلف روایات ملاویږی. په مثال لکه د نبی اکرم ﷺ نور
عقل یا قلم۔ راشی لږ او ګوری چه ائمه محدثین او د مشاہدے حیثیتنو
په دے کښې څنګه تطبیق ورکړے دے۔

(29) د حضرت سید عبد القادر جیلانی حنبلی رحمة الله تعالی نوم ابن
تیمیه ہم په احترام سره اخلی۔ فرمائی۔

الله عزوجل اوفرمائیل۔ چه حماد محمد مصطفی ﷺ نور د خپل
جمال نور حنے پیدا کړو. لکه څنګه چه نبی اکرم ﷺ او
فرمائیل الله تعالی پر څه نه مخکښې حما روح پیدا کړو۔ او پر څه نه
ئے مخکښې حما نور پیدا کړو۔ پر څه نه ئے اول قلم پیدا کړو. دے
هموؤ نه مراد صرف یو څیز دے او هغه ده د محمد ﷺ حقیقت. او
دے حقیقت له ئے نور حکه او وئیل. چه هغه له جلالی تورو پاک
دے. لکه چه الله تعالی او فرمائیل. قد جاء کم من الله نور وکتاب
مبین او عقل ئے حکه اووئیلو. چه هغه د کلیاتو ادراک لری. او قلم
ئے حکه اووئیلو. چه هغه د علم نقل کولو سبب دے. (ترجمه)



عبدالقادر جیلانی. سید غوث اعظم: سر الاسرار فی ما یحتاج الیه الابرار
طبع لاہور ص 14-12

(30) په عمدة القاری کښې ئے مختلف روایات نقل کړی دی. چه الله
تعالی پر حه نه اول قلم پیدا کړو. په یو روایت کښې راحی. چه رنړا
او ظلمت ئے پیدا کړو. او په یو روایت کښې رائی چه د مصطفی
ﷺ نور ئے پیدا کړو. دے نه پس فرمائی۔

التوفیق بین هذه الروایات بان الاولیة نسبی و کل شیء قیل فیه انه اول
فهو بالنسبة الی مابعدها

په دے روایاتو تطبیق دغه دے. چه اولیت اضافی امر دے اوچه کوم
څیز په باره کښې وئیل شوی دی چه اول دے نو هغه د مابعد په اعتبار
سره دے۔

محمود بن احمد العینی ، بدرالدین: (م 855ھ) عمدة القاری (طبع
بیروت) ج 15 ص 109

(31) محدث جلیل حضرت ملا علی قاری علیه الرحمة د مختلفو
روایاتو نقل کولو نه پس فرمائی

معلومه شوه چه پر حیز نه مخکښې مطلقاً نور محمدی دے بیا اوبه
بیا عرش دے نه بعد قلم' نبی اکرم ﷺ نه' علاوه پر څیز کښې
اولیت اضافی دے۔

علی بن سلطان محمد القاری۔ المورد الروی ص 44

(32) حضرت ملا علی قاری چه مرقاة شرح مشکوة کښې فرمائی
علامه ابن حجر فرمائی اول دمخلوقاتو په باره کښې مختلف روایات
دی. او ددے خلاصه لکه څنګه چه حما شمائل ترمذی په شرح کښې
بیان کړے دے. چه پر څیز نه اول هغه نور پیدا کړے شو چه کوم
حنے نبی اکرم ﷺ پیدا کړے شو۔ بیا اوبه دے نه پس عرش

(المرقاة (طبع ملتان) ج ۱، ص 146

33- یو بل ځائے فرمائی۔

اول حقیقی نور محمدی دے۔ لکه چه المورد للمولد کښے زمابیان کړے دے۔ (المرقاة ج ص ۱۶۶

34- د مرقاة په صفحه فرمائی۔

دزموږ نبی ﷺ ذکر اول او کړے شو۔ دے د پاره دی په مرتبے کښے اول دے یا دے د پاره چه دی په وجود کښے اول دے۔ د نبی اکرم ﷺ فرمان دے۔ اول ما خلق الله نوری او کنت نبیاً و آدم بین الروح والجسد ۔

35- یو ځائے په مختلفو روایاتو کښے د تطبیق بله طریقه اختیاروی او فرمائی۔ اولیت له اضافی امورو ځنے دے۔ نو تاویل به ئے دغه کیږی چه ذکر شوی څیزونه (قلم، عقل، نوری، روحی اوعرش) کښے هر څیز د خپل جنس افراد و کښے مخکښے دے. قلم له نورو قلمونو مخکښے پیدا کړے شو۔ اود حضور سید عالم ﷺ نور له نورو نورونو نه مخکښے پیدا کړے شو۔

المرقاة ج ۱، ص 167

(36) دغه امام جلیل علیه الرحمه فرمائی۔

پاتے شو د نبی اکرم ﷺ نور نو همه نور په مشرق او مغرب کښے په انتها درجے ظاهر دے. او هر څه نه اول الله تعالیٰ دده نور پیدا کړو۔ الله تعالیٰ په خپل کتاب کښے دده نوم نور کینبود. اور نبی اکرم ﷺ په دعا کښے راغلی دی۔ چه اللهم اجعلنی نوراً اے الله ته مے نور جوړ کړے ۔

دے نه پس ئے یو څو آیتونه نقل کړی دی۔ خودده نور ظهور د اہل بصیرت په سترګو کښے دے. څکه چه صرف سترګے نه رندے



کیږی زړونه هم رنډیږی۔

موضوعات کبیر مجتبائی، دہلی، ص 86

دے نه پس دغه وئیلے کیدے شی. چه د کومو خلقو بصیرت سترګے رندے وی هغوی طرف ته زموږ خبرو مخ نه دے۔

37- علامه نجم الدین رازی علیه الرحمه (م 654ھ) د حدیث مبارک اول

ما خلق الله نوری او وانا من نور الله و المومنون منی نقل کولو نه پس په مختلفو روایاتو کښے تطبیق کوی او فرمائی

قلم، عقل او روحی درے واړو نه مراد یو دے۔

او هغه پاک روح د محمد دے ﷺ

نجم الدین رازی، علامه: مرصاد العباد، طبع ایران، ص30

38- حضرت امام ربانی، مجدد الف ثانی علیه الرحمه فرمائی۔

حقیقیت محمدی علیه افضل الصلوة واکمل التسلیمات ظهور اول ده، او په دے معنی جمله ؤ حقیقتونو حقیقت دے. چه همه حقیقتونه که هغه د انبیاء کرامو دی یا فرښتو دی حقیقت د پاره د سوری حیثیت لری او حقیقت محمدی تولو حقیقتونو د پاره اصل او بنیاد دے. نبی اکرم ﷺ او فرمائیل۔ اول ما خلق الله نوری (هر څه نه اول الله تعالیٰ زما نور پیدا کړو) خلقت من نور الله و المومنون من نوری (زه د الله تعالیٰ نورنه پیدا کړے شوم او مومنان زما نورنه) دے د پاره دی د الله تعالیٰ او دټولو حقیقتونو په مینځ کښے واسطه دے. دے واسطے نه بغیر مطلوب ته رسیدل هر چا د پاره محال دی، ترجمه، احمد سر هندی، امام ربانی شیخ. مکتوبات فارسی (مکتبه سعیدیه لاہور۔

حصه نهم- دفتر سوم، ص 153،

39- عارف بالله، علامه عبدالوهاب شعرانی (م ھ) فرمائی۔

که ته ووائے۔ چه په حدیث کښے راغلی دی چه ہر څه نه مخکښے ځما نور پیدا کرے شو۔ او په بل روایت کښے دی چه الله تعالیٰ ہر څه نه مخکښے عقل پیدا کرو۔ دے حدیثونو کښے تطیق څه دے □ جواب دغه دے۔ چه دے دواړونه مراد یو دے. ځکه چه د حضرت محمد مصطفیٰ ﷺ حقیقت له کله عقل اول وئیلے شی او ده کله نور۔

عبدالوہاب شعرانی' امام: (م 973) الیواقیت و الجواہر (مصطفیٰ البابی' مصرج ص 202

(40) حضرت شیخ عبد الکریم جیلی (م 805ھ) ہم دغه تطیق ورکړے دے چه عقل' قلم او روح مصطفیٰ ﷺ نه مراد یوشے دے صرف د تعبیرئے فرق ده. جواہرالجار ج4 ص 220

41- په تاریخ خمیس کښے راځی

د محققینوپه نزد دے احاد یثونه مراد یو شے دے د حیثیتونو او نسبتونوپه اعتبار سره عباد تونه مختلف دی. بیائے "شرح مواقف" نه د ځنو امامانو دغه قول نقل کړو.

عقل' قلم او روح مصطفیٰ ﷺ درے و اړو مصداق یودے حسین بن محمد دیار بکری' علامہ تاریخ خمس ج1 ص 19

42- امام المناطقه میر سید زاہد ہروی' دملا جلال حواشی منهیه کښے فرمائی دتفصیلی علم څلور مرتبے دی. اول مرتبے ته شریعت اصطلاح کښے قلم' نورا و عقل ووائی. صوفیاء دے له عقل کل او حکماء ورته عقول ووائی۔

میر سید زاہد ہروی: حاشیه ملا جلال (مطبع یوسفی لکھنو) ص 96

43- علامه اقبال علیه الرحمة فرمائی

لوح بھی تو قلم بھی تو تیرا وجود الکتاب



گنبد آبگینه رنگ' تیرے محیط میں حباب

کلیات اردو (شیخ غلام علی اینڈ سنز' لاہور ص 405

که تکلیف درته نه وی نو یوځل بیا چه دے حوالو باند طائرانه نظر وکړی او پوره دیانت داری سره دا اووایه۔ چه آیا څوک صاحب علم د ہوش او حواس په موجودګی کښے دغه حوالے په دے خبرے رد کولے شی ؟ چه دغه حضرات جاہل او ګمراه وو۔ که اوس ہم څوک په دے خبرو اصرار کوی۔ نو پکار ده چه اول فرصت او فراغت کښے دے دماغی معائنه وکړی.

# دوم اعتراض

احسان الٰہی ظهیر لیکلی دی

دغه چا وئیلی دی چه دامت یو حدیث قبلول هغے درجے ته رسوی چه دهغه سند طرف ته به نظر ہم نه کیږی۔ (ترجمه) احسان الٰہی ظهیر البریلویة 103

# جواب

راشی چه ستاله نے ښکاره کړو چه علماء امت دیو حدیث قبلولو کوم مقام دے

(1) عمدة المحدثین حافظ ابن حجر عسقلانی فرمائی. چه امام بخاری او امام مسلم روایت کړے حدیث' خبر واحد باوجود د یقین فائده ورکوی۔ ځکه چه دے کښے د صحت څو قرینے ملاویږی په هغو کښے یوه قرینه دغه ده چه دامت علماؤ دغه کتابونه قبول کړی دی۔ دے خبرونه پس علامه ابن حجر فرمائی وهذا التلقی وحده اقوی فی افادة العلم من مجرد کثرة الطرق القاصرة عن التواتر. احمد بن حجر عسقلانی' امام' نزہته النظر [illegible] فی توضیح نخبة الفکر (طبع ملتان ص 25-24

يقين د پاره تواتر نه کم درجه د زياتو څو اسنادو قومقابلے کښے علماء امت د پاره قبلول دير فائده مند دی۔

ستاسو غور او کړو □ مطلب داده چه ديو حديث سندونو زياتوالے (چه تواتر نه کم وی) د يقين دومره فائده نه ورکوی۔ لکه چه څومره د امت علماؤ د پاره د حديث قبلول د يقين د پاره مفيد دے۔

(2) حضرت علی مرتضیٰ او حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنهما نه روايت دے چه رسول الله ﷺ او فرمائيل۔ چه ستا سونه څوک نمانځه د پاره حاضر شی۔ نوچه امام په کوم حال کښے وی۔ نو مقتدی دے هغه حال خپل کړی امام ترمذی او فرمائيل دغه حديث غريب دے موبز ته معلومه نه ده چه چا دغه حديث په بل سند سره هم روايت کړے دے باوجود امام ترمذی او فرمائيل و العمل علی هذا عند اهل العلم اهل علم په نزد په دے باند عمل دے۔

امام نووی رحمه الله او فرمائيل د دے حديث سند ضعيف دے۔

حضرت علامه ملا علی قاری عليه الرحمه فرمائی

فکان الترمذی يريد تقوية الحديث بعمل اهل العلم ا- علی بن سلطان محمد القاری' امام' مرقاة المفاتيح (امداديه' ملتان) ج 3 ص 98

ګويا امام ترمذی اهل علم په ذريعے دے حديث ته تقويت ورکول غواړی د حضرت سيدنا جابر رضی الله عنه روايت په باره کښے موبزه يو څو حوالے مخکښے پيښے کړی دی۔ هيڅ وجه نشته چه دغه حديث سملستی رد کړے شی۔ او د دے بيانو لو ته ناجائز او ګناه او وئيلے شی۔

د بفت روزے الاعتصام مدير حافظ صلاح الدين يوسف ناروا انداز او ګوری۔ دنی ليکی

صاحب المواهب علامه قسطلانی (متوفی 923ھ) د نهمے او لسمے



صدی هجری بزرګ دے ددوئی او رسول الله ﷺ په مينځ د نهو سوو کالونو اوږد وخت دے۔ چه کوم وخت پورے د مينځ سلسله مستنده نه وی او مضبوطو سلسلو سره ملاؤ نه وی۔ هغه وخت پورے د موصوف بے سنده نقل کړے روايت به داعتبار له مرتبے نه ساقط ګڼړلے شی۔

دے اعتبار سره سوال کښے ذکر شوے روايت بالکل بے اصله دے او ددے بيانول هم ديره لويه ګناه دے۔ صلاح الدين يوسف' حافظ۔ بفت روزه الاعتصام' لاهور 23 مارچ 1990ء ص 8

امام قسطلانی دغه حديث مصنف عبدالرزاق په حوالے سره نقل کړے دے صرف دوئی نه بلکه ديرو جليل القدر محدثينو او اصحاب کشف بزرګان دين هم دغه روايت نقل کړے دے۔ تفصيل دے نه مخکښے تير شوے دے دومره جليل القدر ائمه کرام د ديرے لوئے ګناه مرتکب ګڼړل لکه چه د الاعتصام مدير کړی دیؔ په خپله د ګناه په فهرست کښے راځی۔ حيرانتيا دے۔ چه مصنف عبدالرزاق خو معتمد کتاب تسليموی او چه کله ثقه محدثينو او اهل علم په حوالے سره دغه حديث بيان شی۔ نوبيا وئيلے شی۔ چه دغه حديث به هله قبول وی۔ چه څه وخت ستاسو پوره سند بيان کړی۔ دغه په دارنګ دی۔ لکه نن چه څوک د بخاری شريف په حوالے سره حديث بيان کړی او هغه له اووئيل شی۔ چه دستا او امام بخاری په مينځ کښے د صديو فاصله ده دستا حواله به هله قابل قبول وی چه ته خپل سند امام بخاری پورے بيان کړے۔ بلکه په قول د حافظ صلاح الدين يوسف به د څوارلسو سوؤ کالونو د مينځ سلسلے به ملاويږی۔ او ظاهره ده چه دغه مطالبه قابل قبوله نه ده۔

## دريم اعتراض

احسان الٰہی ظہیر' امام احمد رضا بریلوی قدس سرہ پہ بارے کښے لیکی- پہ ھغوی خپلے رسالے "صلاہ الصفا" کښے یو موضوع او باطل روایت لیکلے دے- او دھغہ پہ بارہ کښے وئیلی دی- چہ حافظ عبدالرزاق ھغہ پہ خپل مصنف کښے بیان کړے دے حالانکہ ھغہ روایت پہ مصنف کښے نشتہ احسان الٰہی ظہیر: البریلویہ (عربی) ص 102

دے نہ اول متعددو حوالوسرہ بیان وشو- چہ دغہ حدیث د عالم اسلام جلیل القدر علماؤ' محدثینو او ارباب د کشف او شھود بیان کړے دے. او دے حدیث نہ ئے استدلال کړے دے. دے باوجود دے حدیث تہ موضوع او باطل وئیل بالکل غلط دی. پاتے شو دغہ سوال چہ دے حدیث پہ سلسلے کښے د عبدالرزاق حوالہ ور کولے شی- مصنف عبدالرزاق چاپ شوے دے. او پہ ھغہ کښے دغہ حدیث نشتہ . د دے جواب دغہ دے . چہ دغہ سوال بہ ھلہ صحیح وُ- چہ ناشرینولہ مکملہ نسخہ ملاؤ شوے وے- ھغہ خونے پہ خپلہ تسلیموی چہ موږ لہ مکملہ نسخہ لہ یو ځائے ھم ملاؤنہ شوہ. د دے کتاب مرتب او ناشر د کتاب الطھارت پہ ابتداء کښے دغہ نوټ لیکلے دے-

دے جلیل دفتر (مصنف) چاپ کولو او تیاری پہ سلسلے کښے چہ لہ کومو نسخونہ موږ خبر شو- یا موږہ مخطوطے یا فوٹو کاپی پہ صورت کښے حاصلے کړے دی- د ھغوی تفصیل بہ ستاسو پہ مقدمہ کښےمونډوی - انشاء اللہ! ھغہ ټو لے ناقصے دی- خود آستانہ (ترکی) پہ کتب خانے کښے د مُلا مراد نسخہ کا ملہ دہ خوددے ابتداء کښے اوږد نقص دے او داصل پنځم جلد ھم ابتدا نہ ناقص دے-2

حبیب الرحمٰن اعظمی' مصنف عبدالرزاق (طبع بیروت) ج1 ص 3

اوس بہ دغہ فیصلہ ناظرین کرام کوی- چہ کومو خلقو سرہ



مصنف مکملہ نسخہ موجودہ ھم نہ دہ- دھغوی دغہ وئیل څنګہ قبول کیدے شی؟ چہ دغہ حدیث پہ مصنف کښے موجود ھم نہ دے. دے د پارہ موضوع دے. او بل طرف تہ تاریخ اسلام نامور او مستند عالمان دغہ حدیث د مصنف حوالے سرہ بیانوی. بدیھی خبرہ دہ چہ د دوئی بیان بہ قبلولے شی. امام علامہ ابن حجر عسقلانی فرمائی-

چہ کوم سړی علم او د خلقو روایاتو سرہ لږ غوندے تعلق ھم وی- نو ھغہ بہ پہ دے امر کښے شک نہ کوی کہ امام مالک دوی تہ بالمشافہ څہ خبر ورکړی نو ھغہ بہ یقین وکړی- چہ امام دہ لہ رښتونے خبر ورکړے دے-1- احمد بن حجر عسقلانی' امام شرح نخبۃ الفکر - (طبع ملتان) ص27

دغہ خبرہ موږ ھم کولے شو- چہ علم او دیانت سرہ تعلق لرونکے ہر سړی بہ اعتبار کوی- چہ د عالم اسلام نامور شخصیاتو چہ د کومو حوالے مخکښے تیرے شوے. کہ چیرے ئے بالمشافہ بیان کړی چہ حضرت جابر رضی اللہ عنہ حدیث امام عبدالرزاق پہ مصنف کښے بیان کړے دے. نو ھغہ بہ پہ خپل بیان کښے رښتونے وی- دروغژن بہ بالکل نہ وی-

## څلورم اعتراض

د غیر مقلدینو یو امام مولوی محمد داوٗد غزنوی د حضرت جابر رضی اللہ عنہ پہ روایت اعتراض کړے دے-

لیکن دغہ وئیل چہ نبی اکرم صلی اللہ علیہ وسلم ' اللہ سبحانہ' و تعالٰی ذاتی نور نہ پیدا شو- نہ خو صرف جھالت دے- بلکہ صراحتاً کفر دے. دے د پارہ د دے معنی بہ دغہ وی- چہ د ذات الٰہی نور مادہ شو- ددہ پیدائش د پارہ- ګویا دیٔ د ذات الٰہی جز دے العیاذ باللہ دغہ عقلاً او شرعاً غلط دے. اوکہ اللہ سبحانہ' و تعالٰی و تقدس د خپل نور یو ٥ حصہ جدا

کړه او بیائے دده و جود تیار کړو نو معاذ اللّٰه معاذ اللّٰه' اللّٰه تعالیٰ جل شانه' ذاتی نور یو جز کم شو ۱- محمد داؤ د غزنوی ہفت روزه الاعتصام لاہور (23 مارچ 1990ء) ص 11

د حضرت جابر رضی اللّٰه عنه روایت کړده حدیث کښے راځی۔ نورنبیک من نوره' غزنوی صاحب دغه پوهه ده. چه من تبعیضیه دے. دغه معنی ئے ترے کشید کړه. چه اللّٰه تعالیٰ د خپل نور نه یوه حصه جدا کړه او دده و جود ئے تیار کړو۔ دغه خیال ئے نه او کړو۔ چه لفظ من نورو معنو د پاره هم راځی. د درس نظامی ابتدائی کتاب شرح مائة عامل کښے هغه معنے کتلے شی. په دے خائے لفظ من ابتدائیه اتصالیه دے چه فائده ئے دغه دے. چه اللّٰه تعالیٰ د خپل نور نه بغیر د واسطے دده نور پیدا کړو. او په دے کښے هیڅ قباحت نشته۔

د رب ارشاد دے.

و کلمته القها الی مریم وروح منه (النساء 4 آیت 171)

علامه سید محمود آلوسیٰ' دے آیت په تفسیر کښے لیکی۔

د من کلمه مجازاً د غایت (انتها) ابتدا د پاره دے. تبعیضیه نه دے لکه چه عیسایا نو گمان وکړے۔ وئیل شی. چه د ہارون الرشید په دربار کښے یو عیسائی ماہر طیب وؤ. هغه یوه ورځ علامه علی بن حسین واقدی مروزی سره مناظره وکړه. او ورته ئے اووئیل۔ چه دستاسو کتاب قرآن پاک کښے یو آیت دے. چه هغه نه ثابتیږی. چه حضرت عیسیٰ علیه السلام د اللّٰه جز دے. او دغه آیت ئے پیش کړو (وروح منه) علامه و اقدی ورته دغه آیت پیش کړو.

و سخر لکم ما فی السموت وما فی الارض جمیعا منه .

ورته ئے اووئیل . که د ستا خبره تسلیم کړو۔ نوبیا به لازم شی۔ چه ہمه څیزونه د اللّٰه تعالیٰ جزدی. عیسائی لاجوابه شو. او اسلام ئے راوړو.



ہارون الرشید ډیر خوشحاله شو۔ او واقدی له ئے ډیر زیات انعام ورکړو محمود آلوسیٰ' علامه سید روح المعانی (طبع ایران) ج 6 ص 23

عیسائی طبیب پوه شو۔ او اسلام ئے قبول کړو۔ اوس او گوری. د منکرینواو معترضو په عقل کښے دغه خبر راځی. دوئی ئے تسلیموی. او که په انکار مضبوط دی □ دیده باید:

علامه زرقانی فرمائی .

ای من نورهو ذاته ' لابمعنی انها ماده خلق نوره منها بل بمعنی تعلق الارادة به بلاواسطة شیء فی و جوده ۱- محمد بن عبدالباقی زرقانی' امام : شرح مواہب اللدنیه' ج1 ص 55

یعنی له هغه نورئے پیدا کړو۔ چه د ذات بار تعالیٰ عین وؤ۔ دغه مطلب نه ده چه د اللّٰه تعالیٰ ذات ماده دے. چه هغه نه د نبی اکرم ﷺ نور پیدا کړے شو۔ بلکه دده نور سره د بل څیز واسطے نه بغیره د اللّٰه تعالیٰ ارادے تعلق و شو۔

دے وضاحت نه پس د غزنوی صاحب دواړه اعتراضونه پورته کیږی امام احمد رضا بریلوی قدس سره فرمائی۔

حاش للّٰه - دغه د چا مسلمان عقیده چرته' د چا گمان هم نه شی کیدے چه درسالت نور یا بل څیز معاذ اللّٰه د ذات الٰہی جز یا عین اونفس دے. دارنگے عقیده ضرور کفر اوارتداد دے. - احمد رضا بریلوی' امام: مجموعه رسائل نوروسایه (طبع لاہور) ص 26

# پنځم اعتراض

احسان الٰہی ظهیر لیکی۔

د قرآن او حدیث نصونو نه د نبی اکرم ﷺ بشریت ثابت دے او دغه حدیث په خپل ظاہر اعتبار سره د هغو نصونو مخالف دے

واقع هم دے حدیث خلاف دے دۀ مور اوپلار وو۔ حلیمے سعدیے پئ ور کړے۔ امهات المومنین سره ئے نکاح او کړو۔ دۀ اولاد وو۔ دۀ رشته دار او سخر کنی وه۔ 3- احسان الٰہی ظهیر البریلویه (عربی) ص 103 (ترجمه ملخصا)

دغه فضولے خبرے په دے مفروضے مبنی دی. چه اہل سنت و جماعت (بریلو یانو) په نزد حضور نبی اکرم ﷺ صرف نوروی او بشر نه وی خو زمونږ عقیده بالکل دارنګ نه دے. لکه چه څنګه مخکښے بیان شوه۔

## شپږم اعتراض

دپر تکال یوصیب د اوّل مخلوق په باره کښے راتلونکی حدیثا نوپه میځ تطبیق ور کولو باندے اعتراض کړے دے او وئیلی ئے دی. چه په صحیح حدیث کښے راځی چه اللّٰه تعالیٰ ہر څه نه مخکښے اوبه پیدا کړے. دَنور حدیث خو ثابت هم نه دے. نود تطبیق څه ضرورت او ګنجائش وو

دَدے جواب دادے چه تطبیق موبز نه دے ورکړے۔ موبز خو نقل کوونکی یو۔ که تپوس کوی نو سیدنا شیخ عبدالقادر جیلانی' شیخ عبد الکریم جیلی' علامه عبدالوہاب شعرانی' علامه حسین بن محمد دیاربکری' علامه بدر الدین محمود عینی او حضرت ملا علی قاری رحمهم اللّٰه نه تپوس وکړی۔ چه هغوی تطبیق ورکړے دے او اول مخلوق حضور ﷺ له ئے نور وئیلی دی. دوئی په نزدکه حدیث د نور ثابت نه وے نو تطبیق به ئے ولے ورکولو۔ □ حوالے دے نه مخکښے درکړے شوے دی۔

د پرتکال دے علامه خیال دے چه اللّٰه تعالیٰ ہر څه نه مخکښے او به پیدا کړے۔ اوپه دے دعوی ئے پطور دَ دلیل دغه آیت پیش کړو۔



وجعلنا من الماء کل شیء حی

او موبز ہر ژوندے څیز اوبو نه پیدا کړو۔

ده په خیال کښے د نور حدیث دے آیت خلاف دے اور تطبیق ضرورت ئے نشته۔ ځکه چه حدیث نور ثابت هم نه دے۔

د دے اشکال جواب دادے. چه آیت مبارکه کښے مطلق د موجودات ذکر نشته. بلکے اجسام او خصوصاً د حیواناتو ذکر دے۔

علامه سید محمود آلوسی دے آیت په تفسیر کښے لیکی۔

یعنی زموبز او بو نه ہر حیوان پیدا کړو۔ یعنی ہر هغه څیز چه حقیقی زندګی لری۔ دغه تفسیر کلبی اود مفسرینو یوجماعت نه نقل دے د دے تائید دے آیت کریمه سره کیږی

واللّٰه خلق کل دابة من ماء ۔

اللّٰه تعالیٰ ہر چویا یه اوبونه پیدا کړو ۔ محمود آلوسی' علامه' سید روح المعانی (طبع ایران) ج 17 ص 34

ظاہره ده چه آیت او حدیث کښے مخالفت نشته۔ په آیت کریمه کښے د حیوا ناتو اوبو نه پیدا کولو ذکر دے۔ اوپه نور حدیث کښے د حیوان او د جسم ذکر نشته. بلکه د یو مجرد ذکر دے. چه له هموږ اجسامو بلکه انوارو نه مخکښے پیدا کړے شو۔ او هغه وو۔ نور د مصطفےٰ ﷺ .

لطیفه۔

احسان الٰہی ظهیر ووائی. چه یوبریلوی په اردو کښے شعر وئیلے دے

وہی جو مستوئی عرش تھا خدا ہوکر

اتر پڑا ہے مدینه میں مصطفےٰ ہو کر

1- احسان الٰہی ظهیر البریلویه' ص105

اللّٰه اکبر! لویو لویو علماء اسلام د مصنف عبدالرزاق په حوالے سره د

نبی کریم ﷺ عظمت ظاہر وونکئ حدیث بیان کړو۔ نو خلق ئې بې سند و ټیلو سره رد کوی۔ او په دارنګې د انکارِ حدیث دروازه خلاصوی۔ او په بل طرف دغه شعر په خپله نقل کړو۔ او دغه سوچ ئې نه او کړو۔ چه موږ په کومه خله دغه شعر د بریلویا نو په سرا چوؤ۔ نه حواله ' نه سند۔ زموږ په نزد دغه شعر غلط دے۔ او د حد درجې خطرناک دے۔

## بے سایه او سائبان د عالم۔

سورے د کثیفو جسمونووی - د لطیفو څیزونو مثلاً ہوا او د فرښتو سورے نه وی۔ حضور نبی اکرم ﷺ خومجسم نور دے دے د پاره د جسم اقدس سورے نه وؤ۔ امام احمد رضا بریلوی قدس سره دغه مسئله د حدیث شریف او متقدمینو امامانو ارشاد اتو په رنړا کښې بیان کړه۔ ظاہره ده۔ چه د کوم سړی زړه نور ایمان نه منور وی۔ هغه به خپل آقا او مولا ' رحمة اللعالمین ' محبوب رب العالمین ﷺ کمالات عالیه او د فضائلو په اوریدلو خوشحال وی۔ او آمنا صدقنا به اووائی۔ مخالف په دے خبرے ځان خلا صولے نه شی۔ چه دغه بریلویا نو خرافات دی ځکه چه په دے سلسلے کښې کوم نومونه راځی۔ په مفوی د بریلویت چاپ نه شی لګیدے۔ دغه خو هغه بزرګان دی چه په سوؤنو کالونو مخکښې تیر دی.

سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی۔

درسول الله ﷺ سورے نه وؤ۔ او چه کله به نمر مخې ته او دریدلو۔ نو دده نور عالم افروزبه د نمر په رنړا غالب راتلو۔ او چه کله به د ډیوے رنړا ته اوریدلو۔ نودده رنړا به د هغې رنړا دباؤ کړ له۔ عبد الرحمٰن ابن جوزی' امام: کتاب الوفا (مکتبه نوریه رضویه فیصل آباد ج 2 ص 407



د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ارشاد مبارک نه معلومه شوه چه حضور نبی اکرم ﷺ صرف معنوی نور نه دے بلکه حسی نور هم دے۔

(2) امام نسفی علیه الرحمة په تفسیر مدارک کښې فرمائی۔

امیرالمومنین حضرت عثمان غنی رضی الله عنه د نبی اکرم ﷺ په خدمت کښې عرض او کړو۔ بیشکه الله تعالٰی د حضور اکرم ﷺ سورے په زمکے نه واچولو۔ دے د پاره چه څوک قدم نه په کیدی ^ عبدالله بن احمد نسفی' امام تفسیر مدارک (طبع بیروت) ج 3 ص 135

(3) امام جلال الدین سیوطی رحمة الله علیه په خصائص کبرٰی کښې د یو باب عنوان دغه لیکلے دے۔

باب الآیة فی انه ﷺ لم یکن یری له ظل

د نبی اکرم ﷺ دغه معجزه چه دده سورے به لیدے نه شو۔ په دے باب کښے ئې حکیم ترمذی په حوالے سره د حضرت ذکوان رضی الله عنه دغه روایت راوړے دے. چه د نبی اکرم ﷺ سورے به په نظر نه راتلو۔ نه په نمر کښې او نه په سپوږمی رنړا کښې۔ (ترجمه) دے نه پس ئې د محدث ابن سبع دغه ارشاد راوړے دے

د حضور اکرم ﷺ له خواصونه یودغه هم دے۔ چه دده سورے به په زمکے نه پر یوتلو۔ دئ نور دے۔ دے د پاره چه کله به نمر یاد سپوږمی په رنړا کښې تلو۔ نودده سورے به په نظر نه راتلو۔ ځنې عالمانو وئیلی دی۔ چه په دے خبره هغه حدیث شاہدے چه حضور نبی اکرم ﷺ په خپلے دعا کښې عرض او کړو چه ته مے نور جور کړے ^ عبد الرحمٰن بن ابی بکر سیوطی' امام خصائص کبرٰی (مکتبه نوریه رضویه' فیصل آباد ج 1 ص 68

(4) علامه سیوطی په خپل بل کتاب انموذج اللبیب فی خصائص

الحبیب کښې فرمائی د حضور نبی اکرم ﷺ سورے په زمکه نه
واچیدو۔ نه په نمر او نه د سپوږمی رنړا کښې۔ ابن سبع اوفرمائیل۔
دے د پاره چه حضور ﷺ نور دے۔ امام رزین اوفرمائیل۔ چه د
حضور ﷺ انوار په هر چا غالب دی۔ عبدالرحمٰن بن ابی بکر
سیوطی، امام، انموذج اللبیب (الکتاب، لاہور) ص53

(5) امام علامه قاضی عیاض رحمه الله فرمائی۔

د حضور اکرم ﷺ په معجزاتو کښې هغه چه کومه بیان شوه چه
دده جسم انور سورے به نه خو په نمر کښې وو او نه به په سپوږمی رنړا
کښې وو دے د پاره چه حضور ﷺ نور دے۔ ^ قاضی عیاض بن
موسٰی اندلسی، امام (الشفاء (عربی) (طبع ملتان) ج1 ص 243

(6) علامه شهاب الدین شرح شفاء کښې لرغوند خبرونه بعده خپله
رباعی بیان کړه چه ترجمه کې دغه ده" د احمد مصطفٰی ﷺ د
سورے لمن د حضور فضلیت او کرامت له وجې په زمکې نه
جوړیده۔ لکه چه محدثین کرام وئیلی دی۔ دغه عجیبه خبره دے۔ او
دے نه زیاته عجیبه دغه چه همهٔ مخلوق دده په سوری کښې دی۔ او
دغه ئې هم اوفرمائیل ۔

د قرآن پاک بیان دے۔ چه دے نور دے۔ او دده بشر کیدل د دے منافی
نه دے۔ لکه چه وهم شوے دے۔ که ته پوه شوے نو هغه خو نور علی
نور دے 3۔ احمد شهاب الدین خفاجی، علامه (نسیم الریاض (مکتبه
سلفیه مدینه منوره) ج3 ص 382

(7) علامه قسطلانی رحمة الله او فرمائیل چه د نبی اکرم ﷺ
سورے خونه په نمر کښې او نه په سپوږمی رنړا کښې وو۔ دغه
حکیم ترمذی ذکوان رضی الله عنه نه روایت کړو بیا ابن سبع د حضور نبی
اکرم ﷺ له نورنه استدلال او حدیث اجعلنی نوراً نه استشهاد او
کړو۔ احمد بن محمد قسطلانی، علامه، مواهب لدنیه (مع زرقانی)۔



(8) دغه رنګې په سیرت شامیه کښې دی۔ دے کښې دغه اضافه ده
چه امام حکیم ترمذی او فرمائیل په دے کښې حکمت دغه وو۔ چه
څوک کافر په سوری مبارک قدم نه کیدی۔ محمد بن یوسف شامی
- علامه، سبیل الهدٰی و الرشاد (طبع مصر) ج2 ص 123

(9) امام زرقانی په دے باند په تفصیل سره خبرے کړی دی۔ ^ محمد بن
عبدالباقی زرقانی علامه، شرح مواهب لدنیه، ج4 ص 253

(10) دامام علامه بوصیری قصیدے بمزیه په شرح کښې علامه سلیمان
جمل دغه بیان کړے دے۔ سلیمان جمل، علامه، فتوحات احمدیه شرح
بمزیه (المکتبه التجاریه الکبری مصر) ص5

(11) په دارنګې کتاب الخمیس فی احوال انفس نفیس کښې دی۔ -
حسین بن محمد دیار بکری، علامه، تاریخ الخمس (موسسه شعبان
بیروت) ج1 ص 219

(12) امام ربانی مجدد الف ثانی قدس سره فرمائی۔

عالم شهادت کښې د څاسړی سورے له هغه نه لطیف تر وی۔ او حُکه
چه ټول جهان کښې دهٔ نه زیات لطیف هیڅوک نه دے۔ نودده سورے
ولے کیدے شی۔ ^ احمد سرهندی مجدد الف ثانی مکتوبات امام
ربانیؒ فارسی حصه نهم دفتر سوم (طبع لاہور ص153
(ب) اردو مدینه پبلشنګ کراچی) ص1553

(13) شیخ محقق شیخ عبدالحق محدث دہلوی قدس سره العزیز د
حکیم ترمذی روایت نقل کولو نه پس اوفرمائیل۔

د نبی اکرم ﷺ له نومونو یونوم نور دے۔ او دنورسورے نه وی ^
عبدالحق محدث دہلوی شیخ محقق مدارج النبوة فارسی نوریه رضویه
سکهر، ج1 ص 21

(14) علامه عبدالرؤف مناوی (م 1003ھ)، امام ابن مبارک او ابن جوزی په
حوالے سره سید نا ابن عباس رضی الله عنه نه حدیث نقل کړے دے۔

عبدالروف مناوی، علامه شرح شمائل ترمذی (مصطفٰی البابی، مصر) ج 1 ص 47

(15) په تفسیر عزیزی کښې د سورة والضحی په تفسیر کښې واحیٰ د نبی اکرم ﷺ سورے به په زمکې نه وؤ۔ 1- عبدالعزیز محدث دہلوی، شاہ تفسیر عزیزی، فارسی مسلم بک ڈپو، دہلی ص 312

احسان الٰہی ظهیر لیکی۔

چه دوئی (مولانا احمد رضا) له خپلو امامانو نقل کړے دے چه نبی اکرم ﷺ سورے په ز مکه نه اچیدلو۔ او بن داچه دیٔ نور وؤ۔ 2- احسان الٰہی ظهیر البریلویه (عربی) ص 105

اہل سنت و جماعت! مبارک دے وی۔ چه ابن عباس رضی الله عنهما نه امام ربانی مجدد الف ثانی او شاہ عبد العزیز محدث دہلوی رحمۃ الله پورے چه کو مو حضرا تو د سرکار دو عالم ﷺ سوری نفی کړے ده. هغه ټول زمونږ امامان دی۔ نه د غیر مقلدنیو۔ که د دوئی امامان وئی۔ نو دارنګ به نے ولے وئیل۔ چه هغه له خپلو امامانو نقل کړے دے. راشی سرسری نظر په واچوی۔ چه ظهیر صیب د کومو کومو حضراتوامامت نه انکار کړے دے۔

(1) حضرت ابن عباس (2) حضرت عثمان غنی (3) امام جلال الدین سیوطی (4) امام لسفی، صاحب مدراک (5) امام قاضی عیاض (6) علامه شهاب الدین خفاجی (7) جلیل القدر تابعی حضرت ذکوان (8) امام ابن سبع (9) حکیم تر مذ ی (10) علامه محمد بن یوسف شامی (11) امام احمد بن محمد قسطلانی، امام رزقانی (12) علامه سلیمان جمل (14) علامه حسین بن محمد د یاربکری (15) امام ربانی مجدد الف ثانی (16) شیخ عبد الحق محدث دہلوی (17) امام عبد الرؤف مناوی (18) شاہ عبد العزیز محدث دہلوی قدس الله اسرارهم:

ترجمه کوؤنکے آفتاب احمد رضوی

# اہل سنت وجماعت کی عربی مطبوعات

## خود مطالعہ کریں اور دنیائے عرب کے علماء کو بطور تحفہ پیش کریں

(۱) الشیخ احمد رضا خان شاعراً عربیاً: امام احمد رضا بریلوی کی عربی شاعری پر لکھا جانے والا 720 صفحات پر مشتمل عربی مقالہ جس پر مقالہ نگار علامہ ممتاز احمد سدیدی ازہری کو دنیا کی قدیم ترین اور عظیم اسلامی یونیورسٹی جامعہ ازہر شریف سے ایم فل کی ڈگری ملی۔ امام احمد رضا بریلوی پر عربی میں اتنی ضخیم شائع ہونے والی دنیا بھر میں پہلی کتاب۔ ہدیہ 450/00

(۲) الزمزمة القمرية: قصیدہ غوثیہ کی عربیت پر اعتراض کرنے والوں کا علمی محاسبہ۔
تحریر: امام احمد رضا بریلوی قدس سرہ العزیز۔ ترجمہ: علامہ ممتاز احمد سدیدی ازہری۔ ہدیہ 36/00

(۳) اقامة القيامة: کھڑے ہو کر صلوٰۃ وسلام پڑھنے کے مستحسن ہونے پر دلائل کا سیل رواں۔
تحریر: امام احمد رضا بریلوی۔ ترجمہ: ممتاز احمد سدیدی ازہری۔ ہدیہ 33/00

(۴) تكريم ثلاثة من علماء مصر الأزهر: مصر کے تین جلیل القدر علماء کو امام احمد رضا بریلوی قدس سرہ پر تحقیق کرنے کے سلسلے میں ادارۂ تحقیقات امام احمد رضا کراچی نے گولڈ میڈل پیش کیا، جامعہ ازہر شریف میں منعقد ہونے والی اس انوکھی تقریب کا آنکھوں دیکھا حال۔
تحریر: علامہ محمد عبد الحکیم شرف قادری۔ ہدیہ 15/00

(۵) بساتين الغفران: امام احمد رضا بریلوی کا عربی دیوان جسے جامعہ ازہر شریف کے استاذ ڈاکٹر سید حازم محمد احمد محفوظ نے مرتب کیا۔ ہدیہ 250/00

(۶) من عقائد أهل السنة: قرآن وحدیث اور ارشادات علماء کی روشنی میں عقائد اہل سنت اتنے مدلل اور موثر انداز میں پیش کیے گئے ہیں کہ کسی صاحب علم کیلئے مجال انکار باقی نہیں رہتی۔ عرب وعجم کے ارباب علم ودانش نے اس کتاب کو تحسین کی نگاہ سے دیکھا ہے انداز بیان شستہ اور آسان۔
(علامہ محمد عبد الحکیم شرف قادری کے پُر وقار قلم سے) ہدیہ 210/00

من عقائد اهل السنة: کا اردو ترجمہ "عقائد ونظریات" کے نام سے چھپ چکا ہے۔ ہدیہ 150/00

(۷) النبراس: شرح عقائد کی مشہور اور اہم شرح از رئیس المتکلمین علامہ عبد العزیز پرہاروی رحمہ اللہ تعالیٰ بہترین کاغذ، طباعت، جلد دار۔ ہدیہ 270/00